**بسم الله الرحمن الرحیم**

# د توکّل حقیقت

## تر خطبې وروسته ...

عن سعید بن المسیّب رح ان سلمان و عبدالله بن سلام رضی الله عنهما التقیا فقال احدهما لصاحبه ان لقیت ربک قبلی..... واعلمني مالقیت وان لقیته قبلک لقیتک و اخبرتک فتوفی احدهما ولقی صاحبه فی المنام فقال له توکل وَ اَبْشِرُ فَاِنّي لم ار مثل التوکل قال ذالک ثلث مِرَارٌ.

دا یوه واقعه ده چي حضرت سعید بن المسیب رحمه الله بیان کړې ده. حضرت سعید بن المسیّب رحمه الله د لوړي درجې د تابعینو، اولیاء کرامو او محدثینو له جملې نه او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه له خاصو شاګردانو نه دئ. دی وایي چي حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه او حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه یو وخت سره ولیدل، دغه دواړه صحابه رضی الله عنه پخوا اهلِ کتاب ول. حضرت سلمان فارسي رضی الله

عنه په پیل کي خو نصراني پاته شوی وو او بیا ئې یهودیت هم منلی وو او بالاخر الله تعالی د اسلام توفیق ورپه برخه کړ. او حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه په پیل کي یهودي وو، د یهودانو سردار بلل کېده او بیا الله تعالی د اسلام توفیق ورپه برخه کړ. اوس دواړو مشرانو په خپل دغه لیدنه کي د یو بل سره وعده وکړه؛ ی وه بل ته وویل که ته تر ما مخکي وفات شوې نو ما ته به په خوب کي راځې او راته وایې به چي له تا سره څه تېر شول او که زه تر تا مخکي انتقال شوم نو زه به تا ته په خوب کي راځم او درته وایم به چي زما سره څه تېر شول او هلته مي څه شی ولیدل؟!!

## الله تعالی جلّ جلاله عزتونه خوندي کوي:

هسي خو دا د انسان په اختیار کي نه ده چي هغه په خپل خوښه د بل چا په خوب کي هغه ته ورشي خو د الله تعالی جلّ جلاله ځیني نېک بندګان داسي وي چي کله دو ی د الله تعالی جلّ جلاله په یقین د کوم کار اراده کوي نو الله تعالی جلّ جلاله د دوی د ع زت په ساتلو سره د دوی خبره رښتیا کوي. لکه په یو حدیث کي چي راځي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

## رب اشعث اغیر مدفوع بالابواب لو اقسم علی الله لابره

**مفهوم:** ځیني خلک ظاهراً ډېر پرېشان حال او په مصیبت کي وي او خلک دوی له خپلو دروازو نه په زور شړي. که دوی د الله جلّ جلاله په باور قسم وکړي نو الله تعالی هغه پوره کوي.

خو چي کله نا کله د الله بندګان د داسي خبري قسم وکړي چي د دوی په واک کي نه وي خو الله تعالی جلّ جلاله ته د دوی خاطر دومره ګران وي چي د دوی له خول ې نه وتلې خبره الله تعالی پوره کوي. حضور صلی الله علیه وسلّم دا حدیث هغه وخت فر مایلی وو چي کله د دوو ښځو تر منځ جګړه پیل شوه او یوې د هغې بلې ښځې غ اښ ور مات کړ. دا قضیه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم په خدمت کي وړاندي شوه. ل که څرنګه چي هغه وخت د قصاص قانون نازل شوی وو نو ځکه هم حضورص

د قصاص فيصله واوروله. اوس هغه ښځه چي د غاښ قصاص تري اخيستل کېد
ه د هغې يوه دوست چي د حضرت انس رضی الله عنه اکا هم وو، موجود وو، د هغه ل
ه خولې نه ووتل:

**لا والله لا تکسر ثنيتها يا رسول الله** صلی الله عليه وسلم

**مفهوم:** اې د الله رسوله! زه قسم کوم چي د دې غاښ به نه ماتول کيږي.

اوس نو الله تعالی داسي وکړه چي هغې مظلومي ښځي عرض وکړ چي اې رسو
ل الله صلی الله عليه وسلّم! که څه هم زه د دې ښځي د غاښ ماتولو حق لرم خو الله تعالی
ما ته دا اختيار هم راکړی چي زه دا وبخښم. کېدای شي الله تعالی ما په آخرت ک
ي د همدې په بدل کي وبخښي. داسي نو د هغې ښځي غاښ له ماتېدلو وژغورل
شو. پر دې موقع حضور صلی الله عليه وسلّم پورته ياد شوی حديث ووايه.

**د آخرت حالات نور نشي معلومېدلای**

خير! د دغو دواړو صحابه وو نه يو مخکي وفات شو نو دوهم د دې خبري په ان
تظار شو چي هغه به په خوب کي راشي او ده ته به د هغه ځای حالات ووايي. ه
غه هم په خوب کي ورته راغی، اوس د ده ګمان وو چي هغه به ده ته د هغه ځا
ی حالات او کيفيات بيان کړي خو الله تعالی جلّ جلاله هغه عالَم په داسي يوه راز دا
ره پرده کي پټ کړی دئ چي هيڅوک د هيڅ کومي لاري نه نشي ترې خبرېدلا
ی. بس کوم علم چي الله تعالی ورکړی تر هغه د وړاندي تللو مجال هيچا ته نشته
.

**د دې ځای حالات د ليدلو دي، د ويلو نه:**

ما د خپل والد صاحب نه يوه واقعه واورېدله چي يو بزرګ ته چا وويل چي موږ
چي تر مرګ وروسته کوم حالات بيانوو نو يوازي په تصور کولو سره خو د هغ
وی په تفصيل نشو پوهېدلای، نو تاسي يو داسي چل را وښياست چي د هغه په و
اسطه موږ د ټولو تفصيلاتو نه ښه خبر شو. هغه بزرګ ووېل ښه! زه ئې تا ته د
ويلو هڅه کوم. ته داسي وکړه چي کله زه مړ شم زما تر څنګ يو قلم او کاغذ هم

راسره کښېږده، تر مرگ څو ورځي وروسته مي قبر ته راشه نو هلته به د کاغذ
یوه وړه ټوټه وموميې، پر دې ورقي باندي به مي د هغه ځای حالات لیکلي وي. د
ې شخص همداسي وکړه او څو ورځي وروسته چي د هغه قبر ته ورسېدو نو وق
عتاً ئې هلته یو کاغذ ولیدو، دلته نو دا شخص په ډېره خوښۍ او ذوق سره ورمخ
ته شو چي د دې کاغذ په ذريعه به د هغه ځای له حالاتو نه خبر شي، کوم وخت
چي ده کاغذ پرانیستو نو وئې لیدل چي پر کاغذ لیکلي وو چي د دې ځای حالات
د لیدلو دي د ویلو نه دي. او د دې عالَم حالات چي مخفي وي په همدې کي حکم
ت شته، که چیري کوم وخت د آخرت حالات څرگند شي نو انسان به د دنیا هیڅ
کار ونکړای شي. نو ځکه هم په روایاتو کي راځي چي په قبر کي کله عذاب تر
سره کيږي نو کله کله ئې حيوانات هم ږغونه اوري خو انسانان دا آوازونه نشي ا
ورېدلای، دا ځکه چي که چیري انسانان دا آوازونه واوري نو د دنیا بل کار نشي
ترسره کولای.

**په آخرت کي د توکل اهمیت**

په هر صورت! کوم صحابي چي په خوب کي راغی هغه ده ته د عالَم برزخ حا
لات بیان نکړل امّا یوه داسي جمله ئې ورته تکرار کړه چي زموږ او ستاسي د ع
مل سره اړیکه لري، هغه وويل؛ زه چي دلته تر راتللو وروسته کوم شی ډېر په
شدت سره احساسوم هغه توکل دئ، که تاسي پر الله باور وکړ نو بیا زیری واور
ئ چي د دې پایله ډېره ښه ده، ځکه دې نړۍ ته تر راتللو وروسته ما تر توکّل پ
رته بل کوم صفت داسي ونه لیدو چي د انسان درجې دي اوچتي کړي.

## د توکل معنی:

د توکل لفظي ژباړه د "باور کولو" او اصطلاحي ژباړه پر ا"لله د باور کولو" ده
. يعني په دې کائیناتو کي ترسره کېدونکي ټول افعال د الله تعالی په خوښي، قدر
ت او حکمت ترسره کيږي. او توکل په حقيقت کي د توحيد یوه لازمي برخه ده،
ځکه توحید یوازي په ژبه د کلمۀ طیبې ویلو ته نه ویل کيږي بلکي د توحید مفهو
م ډېر ستر دئ. نو چي کله مو "لا اله الا الله" وويل نو د هغې حتمي غوښتنه دا د
ه چي په دې کائیناتو کي نه د عبادت لائق او نه کوم د مینې لائق، په دې کائیناتو

کي نه د چا سره قدرت او نه وسعت، په دې کائيناتو کي ترسره کېدونکي ټول ت
صرفات يوازي د الله تعالی جلّ جلاله په خوښه ترسره کيږي. د کوم بزرګ مقوله ده
چي "توحيد خدا، خدا را واحد ديدن است نه که واحد گفتن" يعني په حقيقت کي تو
حيد د الله تعالی جلّ جلاله واحد ليدلو نوم دئ نه د جلّ جلاله واحد بللو. مطلب دا چي يواز
ي په ژبه تکرارول کافي نه دي بلکي د الله جلّ جلاله په ورکړل شوې سترګه دي و
ګوري چي په دې کائيناتو کي چي څه ترسره کيږي هغه د الله په خوښه ترسره ک
يږي. همدې ته توحيد ويل کيږی او د همدې يوه لازمي غوښتنه توکل هم دئ، ال
له تعالی جلّ جلاله که څه هم اسباب پيدا کړي خو هغه ټول اسباب په خپل ذات کي ک
وم حقيقت نلري، په دغو ټولو اسبابو کي قوت پيدا کوونکی ذات د الله تبارک و تع
الی واحد او لاشريک ذات دئ، همدې ته توکل ويل کيږي. اوس د توکل معنی دا
شوه چي پر اسبابو نه بلکي پر الله تعالی باور ساتل، که څه هم شريعت موږ ته د
اسبابو د اختيارولو حکم کړی، خو انسان دي د اسبابو په اختيارولو سره دا فکر و
کړي چي د دغو اسبابو په خپل ذات کي څه کمال نشته بلکي په هغوی کي قوت ا
يښودونکی ذات کوم بل دئ، نو اصلي رجوع بايد د همهغه ذات په لور وشي.

## د توکل صحيح مفهوم

د مثال په ډول؛ که کوم سړی د ناروغۍ سره لاس و ګرېوان شي. اوس نو د نار
وغۍ درملنه کول خو د نبي کريم صلی الله عليه وسلّم سنت هم دئ خو د يو مسلمان په دو
ا(درمل) خوړلو کي بايد د يو کافر سره څه امتياز په برخه وي، ځکه کافر چي
پر الله جلّ جلاله ايمان نلري د هغه ټول باور پر همدې درملو دئ خو يو مسلمان چي
کله کوم درمل خوري نو هغه پوهيږي چي دا درمل کوم اصل نلري، په دې درم
لو کي دا تأثير ايښودونکی کوم بل ذات دئ او همدا "توکل" بلل کيږي. خو دا خ
بره هم د فکر وړ ده چي که څه هم دا اعتقاد د مسلمان په زړه کي ځای لري خو
د عمل په وخت د هغه پام ورته نه وي. ځکه چي کله ئې د عمل په وخت ورته پا
م وي نو هغه وخت به د توکل صحيح مفهوم ترلاسه شي. او الله تعالی جلّ جلاله د دې
خبري مشاهده هم راکوي چي اسباب انسان دوکه کوي. د مثال په توګه يو درمل
يو ځل د کومي ناروغۍ په درملنه کي ډېره مؤثره ثابته شي خو په دوهم ځل همه
غه دوا په همهغه ناروغۍ کي هيڅ نتيجه نه ورکوي.

## درمل هم د تاتير اجازه غواړي

زموږ یو بزرګ ډاکټر صغیر احمد هاشمي صاحب وو چي دئ زما د والد صاح
ب قدس الله سِرّه مخصوص معالج او ډېر تجربه کار ډاکټر وو. یوه ورځ مي د ه
غه دا خبره واورېدله چي زما د ټول عمر تجربه دا ده چي درمل چي کله د مری
ض ستوني ته کښته کیږي نو د "الله تعالی" نه پوښتنه کوي چي آیا تأثیر وکړم؟!
ګټه او که تاوان؟! بیا چي کومه اشاره ورته وشي د همهغه اشارې مطابق هغه د
رمل کار کوي. همدې بزرګ به کله کله راته ویل چي زه یو وخت د لاهور د ګ
نګا رام روغتون رئیس وم، یوه شپه چي کله روغتون ته ولاړم نو هلته مي د را
تللو په وخت موجود نوکري والو نرسانو ته ویل چي د شپږم نمبر کټ چي کوم نا
روغ دئ پر هغه ما ټول تدابیر وکارول، اوس نو د ده د ژوند تمه نشته، بس د یو
ه یا دوو ساعتونو مېلمه دئ. چي کله مړ شي ورثاء ئې خبر کړئ او د ۱۲-دولس
م کټ چي کوم ناروغ دئ هغه اوس روغ شوی، سهار دی رخصت کړئ ځکه ز
ه ممکن وځنډېږم. چي کله په سبا ورځ روغتون ته ولاړم نو خبر شوم چي د شپ
ږم نمبر کټ ناروغ خو جوړ شوی او کور ته تللی او د ۱۲-دولسم نمبر کټ نارو
غ مړ شوی. نو معلومه شوه چي دارو د خپل تأثیر تر ښکاره کولو مخکي له الله
تعالی نه اجازه اخلي او بیا خپل اثر ښکاره کوي.

## توکل د دې شي نوم نه دئ

ځیني خلک داسي ګمان کوي چي توکل د دې شي نوم دئ چي انسان دي د تدبیر
کولو پرته لاس پر لاس کښېني، ښه غوږ شئ چي توکل هیڅ کله دې ته نه وایي.
لکه یو صحابي رضی الله عنه چي د رسول الله صلی الله علیه وسلّم نه وپوښتل چي زه خپل او
ښان مالچَر ته د څَرولو لپاره بیایم نو آیا د لمونځ کولو پر وخت دوی وتړم او که
ئې همداسي آزاد پرېږدم او پر الله تعالی توکل وکړم؟! نو رسول الله صلی الله علیه وسلّم و
فرمایل چي لومړی دي د اوښانو پښې په رسۍ وتړه او بیا توکل وکړه یعني د اس
بابو تر اختیارولو وروسته توکل وکړه.

## زموږ مثال

زما والد صاحب رحمه الله به د تمثيل په توګه را ته ويل چي يو کليوال هندو وو، کوم وخت چي په هند کي نويو اور ګاډو فعاليت پيل کړ نو ده وليدل چي مکمل ښا ر خپله را روان وي، دی ډېر حيران شو چي دا څه چل دئ؟ ده په ډېر حيرت س ره خلک وپوښتل چي دا څنګه خپله حرکت کوي. چا ورته وويل چي ورو‌ره! دا اورګاډئ خپله نه ځي بلکي چي کله محافظ زرغونه ټوټه ورته وښوروي نو حر کت پيل کړي، نو ځکه هم د اورګاډي اصل چلونکی زرغون بيرغ دئ. ده د دې خبري تر اورېدلو وروسته زرغون بيرغ ډېر معزز وباله او د هغه تعظيم ئې پيل کړ. خلکو وپوښته چي دا څه کوي؟! ده ورته وويل چي دا زرغون بيرغ ډېر زو رور دئ چي دومره ستر اورګاډئ چلوي. خلکو ورته وويل نه دا خو اصلاً د مح افظ د هغه لاس کمال دئ چي دا بيرغ ئې ورباندي نيولی وي. نو ځکه هم اصل شی محافظ دئ، زرغون بيرغ هيڅ کمال نلري. دی هم سمدستي د محافظ خوا ته ورغی او د هغه تعريف ئې پيل کړ چي ته خو ډېر زور ور سړی ئې؛ چي دا او رګاډئ ستا په قوت سره ځي. محافظ ورته وويل چي زه هومره زور ور هم نه يم لکه د اور ګاډئ چلوونکی(ډرائيور) چي هغه تر ټولو وړاندي ناست وي. هغه او ر ګاډئ چلوي، دا سړی د ډرائيور خوا ته ورغی چي ته خو ډېر طاقت ور سړی ئې چي دا دومره ستر اورګاډئ چلوې. هغه ورته کړه چي نه ورو‌ره! زه خو هی څ هم نه يم، زه فقط دا څو پرزې ښوروم، د همدغو پرزو په واسطه اورګاډئ ح رکت کوي. بلکي پرزې هم خپله هيڅ نه دي د دوی تر شا خو د بخار(پخواني ماشينان د بخار په واسطه چلېدل) طاقت دئ چي هغه چلوي. اوس نو کليوال بېچاره ډېر حيران پاته شو چي بالاخر دا اورګاډئ څوک چلوي؟! خو که د غور وفکر نظر موجود وای نو پوه شوی به وای چي په بخار کي هم هيڅ قوت نشته، په دې کي طاقت پيدا ک وونکې کوم بل ذات شته. زموږ حالت دادئ چي موږ د دې کليوال په څېر؛ کله پر زرغون بيرغ باور کړی، کله پر موټروان او کله پر بخار، او تر ټولو وړاند ي چي کوم ستر قوت موجود دئ د هغه خوا ته مو پام نه ور اوړي، چي له همد ې امله موږ له توکل نه محروم پاته کيږو. توکل دا دئ چي هر انسان په هر شي کي دا نظر ولري چي په دې کار کی هيڅ کمال نشته، په حقيقت کي الله تعالی دا کار ترسره کوي.

او د دې خبري د استحضار کولو لپاره شريعت څه احکام ورکړي دي، مثلاً په ق رآن کريم کي فرمايي:

**وَلَا تَقُولَنَّ لِشَاىْءٍ إِنِّى فَاعِلٌ ذٰلِكَ غَدًا. إِلَّا أَن يَشَآءَ اللّٰهُ.**

**ژباړه:** او پام کوه، د یو شي په باب هیڅکله دا مه وایه چي زه به سبا دا کار وکړ م، (ته هیڅ نشې کولای) خو دا چي د الله اراده وشي (انشاءالله). سورة الکهف: ۲ ۲۴/۳

د **ان شاء الله** ژباړه دا ده چي که د الله حکم او رضا حاصله شوه نو فلان کار کو م.

نن خلکو د ان شاء الله ژباړه متضاد کړې ده او دا فکر ئې کړی چي د ان شاء الله نه مراد سُسته اراده هدف ده. حالانکه په حقیقت کي د ان شاء الله هدف دا دئ چي په زړه کي د دې خبري استحضار پیدا کړل شي چي هیڅ کار د الله تعالی جلّ جلاله د حکم پرته نشي ترسره کېدلای.

## یوه قِـصه

حضرت تهانوي رحمه الله په خپل وعظ کي یوه لطیفه لیکلې چي یو وخت یو کس پر لار روان وو چي خپل ملګری ئې ولیدو، ملګري ئې ترې وپوښتل چیري روان ئې؟! ده ویل: وزه رانیسم. ملګري ئې ورته کړه: چي کله د کوم کار اراده کوې نو ان شاء الله وایه! ده ویل: د ان شاء الله څه ضرورت دئ؟! پیسې مي په جېب کي پرتې دي، وزه په بازار کي ده، ځم؛ رانیسم ئې او راځم. چي روان شو پر لا ر ئې چا جېب وواهه او د وزې رانیول ترې پاته شول. چي کله له بازاره راګرځ ېدو همهغه ملګری په مخه ورغی، هغه ترې وپوښتل څه دي وکړل؟! ده وویل: زه ان شاء الله د وزې د رانیولو لپاره روان وم، نو ان شاء الله جېب مي پرې شو او ان شاء الله چي وزه مي رانه نیوله.

عرض مي دا کاوه چي د توکل تعليم ځکه ورکول شوی چي انسان په دې فکر ک
ي وي چي د الله تعالی د رضاء پرته هيڅ کار کول ممکن نه دي، او دا شی د ان
شاء الله په ويلو تر لاسه کيږي. د همدې په سبب د انسان نظر له اسبابو نه اوړي
او د مسبب خوا ته اوړي. تاسي خپله تحقيق وکړئ چي کله ناروغ شئ نو ټول ز
ور مو پر درملو يعني اسبابو باندي وي، ځکه په دې درملو کي د تأثير اچوونکي
په لور رجوع د هر چا په زړه کي نه پيدا کيږي. نو چي کله هم درمل خورئ نو
دا نيت وکړئ چي اې الله! دا درمل خو خورم ته تأثير هم پکې واچوه نو پر توک
ل به عمل وشي. همداسي په تجارت او نورو کي هم همدا حکم دئ.

## د ځينو بزرگانو د توکل طريقه

پر دې ځای لږ نور تفصيل هم عرض کوم چي په اړه ئې په ذهنونو کي اکثراً تر
دد موجود وي. ځينو بزرگانو د توکل دا طريقه غوره کړې چي هغوی د روزمر
ه ژوند تېرولو لپاره کوم کاروبار نه دئ کړی، مثلاً په خپل کور يا کوم ځنګل ک
ي کښېنستي او کار ئې نه کاوه چي له دې امله به کله ډېره لوږه هم ورباندي راغ
له او کله بيا الله تعالی ورکړې هم وه او خپله د رسول الله صلی الله عليه وسلّم په زمانه ک
ي هم د ځينو صحابه وو همدا حالت وو. مثلاً اصحاب صفه چ چي د رسول الله ص
لی الله عليه وسلّم نه د علم د زدکړي لپاره پر صفې باندي ناست ول او هدف ئې يوازي د
قال الله و قال الرسول صلی الله عليه وسلّم زدکړه وه. اوس ظاهراً خو د دوی د ګټي کوم
صورت نه وو او دوی دلته ځکه راغلي وو چي که الله تعالی جلّ جلاله راکړه خورو
به ئې کنه نو صبر به کوو. بلکي په يوه حديث کي راځي چي د نبي کريم ص خو
ا ته دوه ورونه راتلل، يو ورور کاريګر، هنر مند او د مزدورۍ په واسطه ګټه
کوونکی وو، او دوهم ورور به اکثراً د رسول الله صلی الله عليه وسلّم څنګ ته ناست وو ا
و احاديث به ئې اورېدل، دې کاريګر ورور يوه ورځ رسول الله ص ته شکايت و
کړ چي اې د الله رسوله! زما دغه ورور هيڅ کار نه کوي، هر وخت ستاسي سر
ه ناست وي نو رسول الله صلی الله عليه وسلّم ورته وفرمايل:

**(لعلک ترزق به)**

"پر ده اعتراض مه کوه څه خبر؟! چي الله به تا ته د ده له وجهي رزق درکوي.
"

یعني حضور صلی الله علیه وسلّم پر دې توکل منع نه ده فرمایلې او همداسي دا سلسله تر اولیاء کرامو او عظیمو صوفیانو پوري را نقل شوې ده، لکه څنګه چي د حضر ت شیخ عبدالقدوس ګنګوهي رح په اړه مشهوره ده چي یو وخت د څو وختو مس لسل ورږی پاته شو. یو چا د ډوډۍ په اړه ترې وپوښتل نو ده مثبت ځواب ورکړ چي هو! دیګونه روان دي یعني دلته لوږه تېره کړه او په جنت کي مزې وکړه. ن و ځکه هم کله کله دا فکر وکړم چي یو خوا ته د ژوند لپاره د کسبي تدبیرونو تر غوره کولو وروسته د توکل حکم دئ او بلخوا بیا د ځینو بزرګانو دا معمول دئ.

**د اسبابو درې ډوله اقسام**

نو ښه ئې یاد ساتئ! چي الله تعالی د دې دنیا هر کار په سبب پوري تړلی خو د ا سبابو درې اقسام دي.

## داسي اسباب پرېښودل حرام دي

۱ـ هغه اسباب چي د هغوی نه عادتاً نتائج مرتب کیږي، مثلاً انسان وږی شي نو خوراک د لوږي ماتولو سبب دئ، او خوراک داسي سبب دئ چي د نتیجې وربا ندي مرتب کېدل تقریباً یقیني دي، لکه تر ننه چي مو د یو غیر معمولي انسان پر ته د نورو په اړه داسي نه دي اورېدلي چي ډوډۍ ئې وخوړله خو لوږه ئې ختمه نشوه، د داسي اسبابو پرېښودل حرام دي. یعني که د یو چا مخ ته خواړه پراته و ي او دئ وایي چي زه پر الله توکل کوم چي هغه مي لوږه ختموي او دا خواړه نه خوري نو یاد وساتئ که دا کس په همدې حالت کي مړ شو نو په حرام مرګ به م ړ شوی وي. ځکه دا ټول یعني د خوړو خورک فرض او واجب دئ. همداسي د ا سلافو نه حتی له یوه نه هم د دې سبب پرې ښودل نه دي رانقل شوي.

## د داسي اسبابو ترک کول ناجائز دي

۲- د اسبابو دوهم قسم هغه اسباب دي چي د هغوی کله کله نتائج مرتب کیږي او کله کله بیا نه، لکه د درملو مثال چي دئ هغوی کله ګټه کوي او کله ئې بیا نکوي ، دغو ته "ظني اسباب" ویل کیږي او د هغوی حکم دا دئ چي زمونږ په څېر کم زورو خلکو لره د داسي اسبابو پرېښودل هم جائز نه دي چي، د دغو اسبابو تر غ وره کولو وروسته باید پر الله یقین وساتل شي خو ځینو خلکو ته چي الله تعالی د خپل ذات سره خصوصي تعلق او ارتباط ورپه برخه کړی دئ د هغوی لپاره د د اسي اسبابو پرېښودل هم جائز دي، په داسي حال کي چي له الله تعالی نه په هیڅ حالت کي ګیله نه وي. پر الله جلّ جلاله قوي ایمان لرونکي خلک کله نا کله داسي اس باب پرېږدي یعني چي خواړه او داسي نور موجود وي نو هغه نه پرېږدي خو د روزګار د ترلاسه کولو په معامله کي توکل کوي لکه خپله رسول الله صلی الله علیه وسلّم چي، ځیني صحابه وو رضی الله عنه او ډېرو اسلافو همداسي کړي دي. که په چا کي د برداشت او صبر ماده قوي وي نو د هغه لپاره داسي کول جائز دي خو دا زمو ږ په څېر د کمزورو خلکو لپاره نه دئ ځکه په موږ کي قوت نشته. حتی که څو ک غواړي چي د دوی نقل وکړي لا به هم مړ شي، نو ځکه هم په دې کار کي د هغوی نقل کول هم مناسب نه دي.

## پر توکل یوه واقعه

حکیم الامت حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله یوه قصه لیکلې چي یو شخص د ا خبره واورېدله چي د الله تعالی ځیني قوي بندګان پر الله توکل وکړي او کښېني، چي په نتیجه کي ئې الله تعالی حتماً نازوي. که څه هم څه ناوخته شي خو بیا هم په پراخۍ کي ژوند ورباندي تېریږي، نو دې فرد هم د داسي څه کولو اراده وکړ ه او ولاړی په ځنګل کي کښېنستی. اوس نو یوه، دوې حتی درې ورځي تېري ش وې او لوږه ډیریږي خو بیا هم څوک نه راځي، نو ډول ډول خیالات ئې په زړه کي را وګرځېدل، خو چي کله دریمه ورځ تېره شوه نو ګوري چي یو کس دستر خوان ورسره را اخیستی، دئ ډېر خوښ شو چي کار جوړ شو، خو هغه کس چ ي کله رانږدې شو نو مخ ئې واړاوه او خوراک ئې پیل کړ، ده خو ګمان کاوه چ ي ما ته ئې خواړه راوړي خو هغه مخ ترې واړاوه، یو لحظه خو ئې ورته کتل خو طاقت ئې ونشو او شا ئې وروګرځوله او ږغونه ئې پیل کړل تر څو هغه بل

کس د خپل موجودیت نه خبر کړي. هغه چي ئې کله ږغونه واورېدل نو ورته ئ
ې کړه چي راسره راسره شریک شه، دئ هم ورغی او دسترخوان ته کښېناسته.
وروسته بیا دې کس د یو چا سره ولیدل او هغه ته ئې وویل چي موږ خو اورېدل
ي وو چي په توکل باندي الله تعالی له یوې نه یوې لاري انتظام برابروي نو زما
تجربه خو دا ده چي داسي کیږي خو څه نا څه ږغونو ویستلو ته هم ضرورت پ
یدا کیږي. حضرت تهانوي رح فرمایي تر داسي توکل خو دا زر ځلي غوره ده چ
ي انسان دي خپل په لاس مزدوري وکړي، وئې ګټي او وئې خوري، او کوم تو
کل چي ږغ ته اړتیا لري نو د هغه توکل نه د الله پناه!

نو ځکه هم وایو چي زموږ غوندي کمزورو خلکو لپاره دا لار نده بلکي زموږ ل
پاره لار دا ده چي موږ اسباب غوره کړو، خو پر هغوی د کامل یقین پر ځای با
ید باور د الله جلّ جلاله پر ذات وي. چي نبي کریم ص په یوه حدیث کي داسي تعبیر
کړی:

**(اجملوا في الطلب وتوكلوا عليه)**

"په اعتدال سره د یو شي لپاره هڅه وکړه او پر الله باور وکړه."

## داسي اسباب د توکل خلاف/منافي دي

۳- د اسبابو درېیم قِسم د وهمي ډوله اسبابو دئ، یعني انسان په دې هڅو کي وي
چي فلانۍ زمکه به رانیسم، هغه خرڅوم او فلان ځای به رانیسم، بیا به هغه بل
ځای رانسیم، یعني هر وخت خیالي پلانونه جوړوي نو دا شی د توکل په خلاف د
ئ. نو ځکه هم باید د یو شي په هڅو کي اعتدال موجود وي یعني دومره مشغولی
ت او محبوبیت موجود نه وي چي د هغه پرته بل خوا ته ذهن لا ولاړ نشي.

## د خبرو لنډیز دا دئ چي!

خلاصه دا چي اسباب ضرور غوره کړئ خو یو به په هغه کي محبوبیّت نه وي ا
و بل دا چي باور باید پر الله تعالی وي او د همهغه نه انسان غوښتنه وکړي، چي
لار ئې نو دا ده چي کله کوم تدبیر سنجول کیږي نو د الله جلّ جلاله په لور رجوع و

شي چي اې الله! زه خو دا تدبير كوم خو د دې تدبير نتيجه راويستل ستا په اختيار كي دي. اې الله! دا كامياب كړه. دا غوښتنه رسول الله ص په دې مختصره جمله كي داسي فرمايلې ده:

**(اللهم هذا الجهد وعليک التكلان)**

"اې الله! دا زما هڅه ده خو باور مي يوازي پر تا دئ."

تدبير چي هر ډول تدبير وي، يعني هغه كه د مأموريت په شكل كي كوم تدبير و ي او كه د تجارت، د علم د ترلاسه كولو او يا د مرض د درملني... په هر صور ت د دې دعاء په لوستلو سره د الله په لور رجوع وكړه، ان شاء الله چي د توكل شتمني به مو په برخه شي.

**د رجوع الى الله عادت خپل كړئ**

زموږ حضرت ډاكټر صاحب رحمه الله به فرمايل چي تاسي به كله هغه مجاهدې كوئ چي پخوانيو بزرګانو كولې، نو ځكه تاسو ته وړې وړې لطيفې اوروم چي كه چيري عمل پرې وكړئ نو محروم به پاته نشئ. دا لطيفې همدا دي چي د الله تعالى په لور د رجوع كولو عادت په ځانونو كي پيدا كړئ، تر دې بريده كه چير ي له كور نه د كوم مقصد لپاره وتلی ياست او هلته د سواري په واسطه تلل وي نو هغه اختيار كړئ خو په زړه كي دا خيال راوړئ چي اې الله! دا سواري خو تا ماته راكړه نو اوس ئې همته د مقصد تر ځايه ورسوه! او ورسره د نبي كريم صلى الله عليه وسلّم نه رانقل شوې دا دعاء هم لوله:

١- سُبْحٰنَ الَّذِی سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِينَ

ژباړه: "هغه ذات پاك دی چي زموږ لپاره يې دغه (شيان) مسخر كړل، كه نه مو ږ د دوی تر كنترول لاندي راوستلو وس نه درلود؛ (سُوْرَةُ الزّخرُف :١٣)

۲- اَللّٰهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِی السَّفَرِ وَالْخَلِيْفَةُ فِی الْأَهْلِ وَالْمَالِ وَالْوَلَدِ

مفهوم: اې الله! زما د سفر ملګری ته ئې او زما تر شا زما د کورنۍ، مال او اولاد ساتونکی هم ته ئې.

۳- اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ أَعُوْذُبِکَ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَکَآبةِ الْمَنْظَرِ وَ سُوْءِ الْمُنْقَلَبِ فِی الْأَهْلِ وَالْمَالِ وَالْوَلَدِ

مفهوم: اې الله! زه د سفر له ستړیاوو او د بد حالت له لیدلو او کورنۍ، اهل و عیال ته له بدو ستنېدلو نه ستا ساتنه/پناه غواړم.

**یعني د اسبابو اختیارول خو شته دي خو نظر پر الله دئ.**

**توکل داسي غوره کوئ**

عرض مي دا وو چي د توکل په اړه حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه فرمایي چي د الله تعالی خوا ته تر تللو وروسته ما تر دې بل غوره عمل ونه لیدو، یعني د دې عمل په سبب چي څومره درجې اوچتي کیږي هغه د نورو اعمالو په واسطه نه ترسره کیږي. نو ځکه هم د دې عمل حصول زموږ له پاره ډېر ضروري دئ چي باید ئې تل تمرین جاري وساتو. زموږ حضرت تهانوي رحمه الله به فرمایل: "الحمد لله چي کله هم په دې عمل کي بد عهدي او بې قولي نه ترسره کیږي." چي کله کوم شخص د پوښتني لپاره راځي او وایي چي زه غواړم یوه پوښتنه درنه وکړم نو زه سمدستي په زړه کي د الله جلّ جلاله په لور رجوع کوم چي اې الله جلّ جلاله! خبر نه یم چي دئ به کومه پوښتنه وکړي فلهذا د ده د پوښتني ځواب زما زړه ته واچوه! همدې ته توکل ویل کیږي.

رسول الله صلی الله علیه وسلّم په یوه حدیث کي وفرمایل چي که په تاسي کي د چا د بوټو نو تسمه لا پرې شي نو له الله جلّ جلاله نه ئې وغواړئ!! دا ځکه چي موچي او پیس

ي ټول د ده د حکم تابع دي، تر څو چي د ده حکم ونشي ستاسي د بوټونو تسمه ل
ا نشي جوړېدلای. او د دې اندازه به تاسي ته د عمل پر وخت وشي چي دا څومر
ه عجيبه سرمايه ده. زموږ حضرت ډاکټر صاحب به فرمايل چي زه تاسي ته دا
خبري په يوه لمحه کي بيانوم نو ځکه ئې مناسب قدر نشي کېدلای، چي کله ئې تم
رين وکړئ نو بيا به ئې له ارزښت نه خبر شئ.

د توکل يوه لازمي حصه دا هم ده چي په زړه کي چي د خير کوم کار را وګرځي
، هغه له الله تعالی نه حتماً وغواړه او بيا د الله جلّ جلاله پر فيصله خوښ هم اوسه. ه
مدې ته "رضاء بالقضاء" ويل کيږي. فلهذا چي کله د الله تعالی له لوري فيصله و
شي نو پر هغه د ډېر واويلا کولو ضرورت نشته، هو که د طبعي تحولاتو له مخ
ي د فيصلې د بدلون له امله څه درد و زحمت درته پيدا شي نو بيا هم څه خبره ن
ده.

د دې تر څنګ د قرآن کريم دا آيت هم تلاوت کوئ:

أُفَوّضُ اَمرِى اِلَى اللهِ اِنَّ اللهَ بَصِيْرٌ بِالعِبَادِ

الله تعالی ج دي موږ ټولو ته پر دې د عمل کولو توفيق را په برخه کړي.

**آمين**

وَ اٰخِرُ دَعَوٰنَا اَنِ الْحَمدُ لِلهِ رَبِّ العٰلَمِينَ